عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَعَوَّذُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.

نه د قبر د عذاب نه پناه غوښتل واوريدل.

١٢٨٧ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْا اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ.

١٢٨٧ : مسلم بن ابراهيم. هشام. يحيي. ابوسلمه. حضرت ابوهريرهٔ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلم به دا دُعا غوښتله چه، اے اللّٰه زهٔ تانه د قبر د عذاب، د اُور د عذاب، د ژوند او مرګ د فتنے او د مسيح دجال د فتنے نه پناه غوارم.

## باب ٨٧١: عَذَابِ الْقَبْرِ مِنَ الْغِيْبَةِ وَالْبَوْلِ.

باب ٨٧١: غيبت او وړو بولو سره د قبر د عذاب كيدو بيان.

١٢٨٨ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَبْرَيْنِ فَقَالَ اِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ مِنْ كَبِيْرٍ ثُمَّ قَالَ بَلٰى اَمَّا اَحَدُهُمَا فَكَانَ يَسْعٰى بِالنَّمِيْمَةِ وَاَمَّا اَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهِ قَالَ ثُمَّ اَخَذَ عُوْدًا رَطْبًا فَكَسَرَهُ بِاثْنَتَيْنِ ثُمَّ غَرَزَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلٰى قَبْرٍ ثُمَّ قَالَ لَعَلَّهُ يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَالَمْ يَيْبَسَا.

١٢٨٨ : قتيبه. جرير. اعمش. مجاهد. طاؤس. ابن عباسؓ نه روايت كوي نبي صلي اللّٰه عليه وسلم دوه قبرونو سره تير شولو او، وے فرمائيل، چه دے دواړو قبرونو والو باندے عذاب كيږي، او د څه لوئے كار په وجه په دوي عذاب نهٔ كيږي. بيائے او فرمائيل هاؤ لوئے كار وو دوئ كښې به يو چُغلي خوړله او دويم د وړو بولو نه ځان نه بچ كولو. بيا حضورؐ يو لوند ښاخ واخستلو، هغه ئے دوه ټكړے كه. او يوه يوه ټكړه ئے په يَو يو قبر ښخه كړه. بيائے او فرمائيل شايد چه ددے دواړو په عذاب كښې كمے اوشي څو پورے چه دا دواړه لختے اوچے شوے نهٔ وي.

## بَابُ ٨٧٢: اَلْمَيِّتُ يُعْرَضُ عَلَيْهِ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ.

باب ٨٧٢: په مړي د سحر مابنام په وخت د پيش كولو بيان.

۱۲۹۰ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَحَدَ كُمْ اِذَا مَاتَ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ اِنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَيُقَالُ هٰذَا مَقْعَدُكَ حَتّٰى يَبْعَثَكَ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

۱۲۹۰ : اسماعيل. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، کله چه تاسو کښې څوک مړشي نو سحر مابنام د هغه مخکښې د هغه ځائے پيش کولے شي که هغه د جنتيانو نه وي، او که هغه د دوزخيانو نه وي، هغه ته وئيلے شي، چه دا ستا ځائے دے، تردے چه الله تعالىٰ د قيامت په ورځ تا راپورته کړي.

## بَاب ۸۷۳ : كَلَامِ الْمَيِّتِ عَلَى الْجَنَازَةِ.

## باب ۸۷۳ : په جنازه د مړي د خبرو کولو بيان.

۱۲۹۰ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ فَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلٰى اَعْنَاقِهِمْ فَاِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ يَاوَيْلَهَا اَيْنَ يَذْهَبُوْنَ بِهَا يَسْمَعُ صَوْتَهَا كُلُّ شَيْءٍ اِلَّا الْاِنْسَانَ وَلَوْ سَمِعَهَا الْاِنْسَانُ لَصَعِقَ.

۱۲۹۰ : قتيبه. ليث. سعيد بن ابي سعيد. ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلم او فرمائيل، کله چه جنازه تياره شي او خلق ئے په اوږو اوچته کړي، که هغه نيک عمله وي، نووائي، ما زر اوړئے، ما زر اوړئے. او که نيک عمله نه وي، نو وائي، افسوس، تاسو ما کوم خوا اوړئے. د انسان نه سوا نور ټول څيزونه د هغه آواز آوري، که هغه انسان واوري، نو بيهوشه به شي.

## بَاب ۸۷۴ : مَا قَالَ فِيْ اَوْلَادِ الْمُسْلِمِيْنَ

قَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ لَهُ ثَلَاثَةٌ مِّنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ كَانَ لَهُ حِجَابًا مِّنَ النَّارِ اَوْدَخَلَ الْجَنَّةَ.

## باب ۸۷۴ : د مسلمانانو د اولاد په حقله چه

کوم روايتونه نقل دي. ابوهريرهؓ د نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت اوکړ، چه د چا درے نابالغه بچي مړه شي، نو هغه د هغه د پاره د دوزخ د اُور نه حجاب (پرده) شي. يا دائے او فرمائيل، چه هغه به جنت کښې داخل شي.

**١٢٩١ :** حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنَ النَّاسِ مُسْلِمٌ لَهُ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ إِلَّا أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ إِيَّاهُمْ.

**١٢٩١ :** يعقوب بن ابراهيم. ابن عليه، عبدالعزيز بن صهيب. انس بن مالک نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل: د کوم مسلمان چه درې نابالغه بچي مړه شي نو اللّٰه تعالٰي به هغه په خپلو بچو ډيرې زياتې مهرباني په سبب او د خپل رحمت په باعث جنت کښې داخل کړي.

**١٢٩٢ :** حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّهُ سَمِعَ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ.

**١٢٩٢ :** ابوالوليد. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي: چه ابراهيم (د حضورؐ خوئې) وفات شو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او فرمائيل چه جنت کښې هغه د پاره يوه پئې ورکونکي (دائي) ده.

الحمدللّٰه والشکرللّٰه پنځمه پاره ختمه شوه

# قرآن حکیم
## په پښتو ژبه کښې

## تفسیر معارف القرآن

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع دیوبندی د قلمه
د تولو نه لوئے او مستند تفسیر په 30 جلدونو کښې
دا تفسیر په (۱۰) جلدونو کښې هم موجود دے .

## آسان تفسیر پښتو

د شاه ولی الله او شاه عبدالقادر ... په پښتو ژبه کښې

تفسیر عثمانی (کابلی) ... په یو جلد کښې

## تفسیر بیان القرآن
د مولانا اشرف علی تهانوی. (پښتو)

## تعلیم القرآن
د مولانا ډاکټر محمد دین .

د قرآن مجید آسانه تکی په تکی او روانه ترجمه (پښتو)